# پیدایښت

## یعني اوّل کتاب دَ حضرت موسیٰ

## اوّل باب

۱ ۲ ۱ په ابتدا کښ الله آسمانونه او زمکه پیدا کړل ۲ او زمکه ورانه او
خالي وه او په مخ دَ ژورئ تیاره وه او دَ الله روح دَ اوبو په مخ
۳ ۴ رپیده ۳ او الله وویل چه رڼا دِ شي نو رڼا شوله ۴ او الله رڼا ولیدله
۵ چه ښه دَه نو الله رڼا له تیاري نه بیله کړله ۵ او الله رڼا ته ورځ
وویله او تیاري ته ئې شپه وویله نو نماښام او صباح وړنبئِ ورځ
۶ شوله ۶ او الله وویل چه دَ اوبو په مینځ کښ دِ فضا شي او اوبوبه دِ له
۷ اوبو بیلي کاندِ ۷ نو الله فَضَا پیدا کړه او په مینځ دَ اوبو کښ چه دَ
فضا دَ لاندِ وي او دَ اوبو چه دَ فضا دَپاسَ وي جدایي ئې وکړله او
۸ هم هغه شان وشه ۸ او الله هغه فضا ته آسمانووایه او نماښام
۹ او صباح دویمه ورځ شوله ۹ او الله وویل چه هغه اوبه چه دَ آسمان
دَ لاندِ دي یو ځاي دِ جمع شي او وچّه دِ ښکاره شي او هم هغه شان
۱۰ وشه ۱۰ او الله وچي ته زمکه وویله او جمع شویو اوبو ته ئې قالي دریاب ووایه
۱۱ او الله ولیدل چه ښه دي ۱۱ او الله وویل چه زمکه دِ واښه او
هغه بوټي چه تخم نیسِي او میوه داري وُنې چه دَخپل جنس په شان
میوې نیسِي چه خپل تخم په کښ په زمکه باندِ وِي و بتوکوي او هم
۱۲ هغه شان وشه ۱۲ پس زمکي واښه او بوټي چه تخم دَ خپل جنس
په شان نیسِي او ونّې چه میوه نیسِي او تخم دَ خپل جنس په شان
۱۳ په کښ وِي وویستل او الله ولیدل چه ښه دي ۱۳ او نماښام او صباح
۱۴ دریمه ورځ شوله ۱۴ او الله وویل چه دَ آسمان په فضا کښ دِ نورونه

ښي چه دَ ورځي او دَ شپي په مینځ کښ بېلتون وکاندِ او دَ نښانو او
دَ وختونو او دَ ورځو او دَ کالونو دَپارَ دِ شي ١٥ او دَ آسمان په فضا ١٥
کښ دِ نورونه شي چه زمکه روښانه کړي او هم هغه شان وشه
١٦ نو الله دوه لوي نورونه جوړ کړل لوي نور دَ ورځي دَ حکم دَپارَ او ١٦
وړوکي نور دَ شپي دَ حکم دَپارَ او ستوري ئي هم ١٧ او الله دوي ١٧
دَ آسمان په فضا کښ کېښودل چه په زمکه باندِ روښنائي وکړي
١٨ او په ورځ او په شپه باندِ حکم وکاندِ او دَ روښنائي او دَ تیاري ١٨
په مینځ کښ جدائي وکاندِ او الله ولیده چه ښه دي ١٩ او ماښام ١٩
او صباح څلورمه ورځ شوله ٢٠ او الله وویل چه اوبه دِ ډیر زیات ٢٠
کړي هسي ځناور چه ژوندون لري او مرغان چه دَ زمکي دَ پاس دَ
آسمان دَ فضا په مخ دِ والوزي ٢١ نو الله لوي نهنګان او ټول ژوندي ٢١
ځناور تلونکي هغه چه اوبو ډیر پیدا کړي وُو دَ هغو دَ جنس په شان
او ټول ځانګدار مرغان دَ هغه دَ جنس په شان ئي پیدا کړل او
الله ولیده چه ښه دي ٢٢ او الله وله برکت ورکړ او ورته ئي وویل ٢٢
چه بار ونیسئ او ډیر شئ او دَ قالي درياب اوبه ډکي کړئ او مرغان دِ
په زمکه ډیر زیات شي ٢٣ نو ماښام او صباح پنځمه ورځ شوله ٢٤ او ٢٣-٢٤
الله وویل چه زمکه دِ ژوندي ځناور دَ هغه دَ جنس په شان څاروي او
چینجي او ځنګلي ځناور دَ هغه دَ جنس په شان وباسي او هم هغه
شان وشه ٢٥ نو الله دَ زمکي ځناور دَ هغه دَ جنس په شان او ٢٥
څاروي دَ هغه دَ جنس په شان او ټول خوئیدونکي دَ زمکي دَ هغو دَ
جنس په شان جوړ کړل او الله ولیده چه ښه دي ٢٦ او الله وویل ٢٦
چه مونږ به انسان په خپل صورت او په خپل شان سره جوړوُو
چه دَ قالي درياب په کبانو او دَ آسمان په مرغانو او په څارویو او
په ټولي زمکي او په ټولو خوئیدونکو چه په زمکه خوئیږي حکم کوي ٢٧ نو الله ٢٧
انسان په خپل صورت پیدا کړ دَ الله په صورت ئي پیدا کړ نر او ښځه

۲۸ يُ پيدا کړل ۲۸ او الله دوي له برکت ورکړ او دوي ته الله وويل چه
بارداراو ډېر شئ او زمکه ډکه کړئ او لاندِ يُ کړئ او دَ قالي درياب
په کبانو او دَ آسمان په مرغانو او په ټولو ژونديو چه په زمکه ځي
۲۹ حکم کوئ ۲۹ او الله وويل چه گوره ما هر بوټي چه تخم نيسي تاسو
له درکړيدي دَ ټولي زمکي په مخ باندِ او هره ونه چه په هغي کښ
ميوه وِي هسي ونه چه تخم نيسِي ستاسو دَپارَ به خوراک ښي ۳۰ او
۳۰ دَ زمکي هر يو ځناور له او دَ آسمان هر مارغه له او هر يو تلونکي
له په زمکي چه په کښ دَ ژوندون ساه وِي ټول شنه واښه مِ دَ
۳۱ خوراک دَپارَ ورکړي دِي او هم هغه شان وشه ۳۱ او هرڅه چه
الله جوړ کړي وُو وَ يُ ليدل او گوره چه ډېر ښه دي او ماښام او
صباح شپږمه ورځ شوله ❖

# دويم باب

۲-۱ آ نو آسمانونه او زمکه او ټولي لښکري. دَ دوي پوره شولي ۲ او الله
چه څه کارکاوه په اوومه ورځ يُ پوره کړ نو په اوومه ورځ له
۳ خپلَ ټوله کارَ چه يُ کاوه وزگار شه ۳ او الله اوومه ورځ مبارکه
کړله او پاکه يُ کړله ځکه چه دي له ټولَ کارَ خپله چه الله دَ جوړولو
۴ دَپارَ پيدا کړ په دغه کښ وزگار شه ۴ دا دَ آسمانونو او دَ زمکي دَ
پيدا کيدلو بيان دي په هغه وقت کښ چه دوي پيدا شوي دِي په
۵ هغه ورځ چه خداوند الله زمکه او آسمانونه جوړ کړل ۵ او هيڅ بوټي دَ
ميدان لا په زمکه کښ نه وُو او هيڅ واښه دَ ميدان لا نه وُو
ټوکيدلي ځکه چه خداوند الله په زمکه باران نه وه ورَولي او نه سړي
۶ وه چه دَ زمکي خدمت وکړي ۶ نو له زمکي نه لړه پورته کيده او دَ
۷ زمکي ټول مخ به يُ اوبه کاوه ۷ او خداوند الله دَ زمکي له خاورو نه سړي
جوړ کړ او دَ هغه په سپېږمو يُ ساه دَ ژوندانه پُو کړه او سړي ژوندي
۸ ځان شه ۸ او خداوند الله په عدن کښ نمرخاته ته يو باغ نهال کړ

۹ او هغه سړي چه ئې جوړ کړي وه هلته ئې وساته ۹ او له زمکي نه
هره ونه چه ښايسته ښکاريدله او په خوراک کښې ښه وه خداوند الله
وټوکوله او د باغ په مينځ کښې ئې هم د ژوندانه ونه او د نيکو او د بدو
۱۰ د پيژاندلو ونه ۱۰ او د باغ د اوبو کولو دپاره له عدن نه يو سيند ووت او له
۱۱ هغه نه څلور سرونه وويشلي شول ۱۱ د ورنبي نوم فيشون دي او هغه
۱۲ د حويلي په ټوله زمکه کښې وگرزيده چه سره زر هلته کيږي ۱۲ او د
۱۳ هغي زمکي سره زر کره دي او هلته کوکل او بلور هم شته ۱۳ او
د دويم سيند نوم جيحون دي او هغه د کوش په ټوله زمکه کښې
۱۴ گرزي ۱۴ او د دريم سيند نوم حدقيل دي چه د اشور په نمرخاته بهيږي
۱۵ او څلورم سيند فرات دي ۱۵ او خداوند الله سړي واخست او د عدن په
۱۶ باغ کښې ئې کښيناوه چه ئې خدمت او ساتنه کوي ۱۶ او خداوند الله سړي
۱۷ ته حکم وکړ وئې ويل چه ته د باغ له هري ونې نه خوره ۱۷ ليکن د ښو
او د بدو د پيژاندلو له ونې نه مه خوره څکه چه کومه ورځ چه له هغي
نه وخوري نو خامخواه به مړ شي
۱۸ ۱۸ او خداوند الله وويل چه ښه نه ده چه سړي يواځي وي زه د ده دپاره
۱۹ مددگار د ده په شان جوړوم ۱۹ او خداوند الله ټول ځناور د ميدان او واره
مرغان د آسمان جوړ کړل نو بيا سړي ته ئې حاضر کړل چه ووينې چه
دي ئې څه څه بولي نو چه سړي هر ژوندي نفس ته وباله نو هم هغه
۲۰ ئې نوم شه ۲۰ او سړي د ټولو څارويو او د آسمان د مرغانو او د ټولو د ميدان
ځناورو نومونه کيښودل ولې د سړي دپاره مددگار د هغه په شان موندي
۲۱ نه شه ۲۱ نو خداوند الله په سړي باندې درونده خوب ورووست نو اوده شه
او د هغه له پښتو نه ئې يوه واخستله او د هغي ځاي ئې په غوښه
۲۲ ډک کړ ۲۲ او هغه پښتۍ چه خداوند الله له سړي نه آخستې وه ښځه
۲۳ ئې ترجوړه کړله او سړي ته ئې حاضر کړله ۲۳ نو سړي وويل چه دا
اوس هډوکي څما له هډوکو نه او غوښه څما له غوښو نه ده دا

۲۴ ښځه بللې شي چه له نر آخستې شوې ده ۲۴ له دې سبب سړې خپل
پلار او خپل مور پرېږدي او د خپلې ښځې سره پیوست شي او یو جثّه
۲۵ کیږي ۲۵ او دواړه برمنډ وُو سړې او د هغه ښځه او دوي نه شرمیدل +

## دریم باب

۱ ۱ او د میدان له ټولو ښناورو چه خداوند الله جوړ کړي وُو مار ډېر
مکار وه نو ښځې ته يې وویل چه دا رښتیا ده څه؟ چه الله ویلي دي چه
۲ د باغ له هرې ونې نه مه خورئ ۲ نو ښځې مار ته وویل چه د باغ د
۳ ونې له میوې نه خورو شو ۳ مګر له میوې د هغې ونې چه د باغ په مېنځ
کښې ده الله ویلي دي چه تاسو تر مه خورئ او مه وله لاس وروړئ
۴ هسې نه چه مړه شئ ۴ نو مار ښځې ته وویل چه تاسو به هېڅرې مړه
۵ نه شئ ۵ بلکه الله پوهیږي چه کومه ورځ چه تاسو له دې نه وخورئ
نو ستاسو سترګې به پرانستې شي او تاسو به د الله په شان د ښو او
۶ د بدو پېژاندونکي شئ ۶ نو ښځې ولیده چه ونه خوراک له ښه ده او
سترګو له خوشحالي ده او د پوهې بخښلو د پاره غوره ده نو د هغې له
میوې نه يې واخسته او و يې خوړله او خپل سړې له يې هم چه ورسره
۷ وه ورکړله نو هغه وخوړله ۷ نو سترګې د دواړو پرانستلې شوې او پوه شول
چه مونږ برمنډ یو نو د انځر پاڼې يې وګنډلې او د ځانونو د پاره يې لنګوټې
۸ جوړ کړې ۸ او دوي آواز د خداوند الله واورید چه د ورځې د باد د الوتلو
په وقت کښې په باغ کښې ته نو سړې او ښځې يې د یَهوَهٔ الله له مخ
۹ د باغ د ونو په مېنځ کښې پټ شول ۹ او خداوند الله سړې ته آواز وکړ
۱۰ او ورته يې وویل چه ته چرته يې ۱۰ نو و يې ویل چه ستا آواز مې په
۱۱ باغ کښې واورید نو ویریدم ځکه چه برمنډ یم نو ځان مې پټ کړ ۱۱ نو
و يې ویل چه چا پوه کړې چه ته برمنډ يې له هغې ونې نه چه ما در
۱۲ ته حکم کړې وه چه له هغې نه مه خوره خوړلې دې څه؟ ۱۲ نو سړې
وویل چه هغه ښځه چه تا ځما سره کړې وه هغې له هغې ونې نه ما

١٣ له راکړه نو و مې خوړه ۱۳ نو خداوند الله ښځې ته وويل چه دا دِ څه وکړل
١٤ ښځې وويل چه مار وغولولم نو و مې خوړه ۱۴ پس خداوند الله مار ته
وويل هر کله چه تا دا کار وکړ نو ته په ټولو څارويو کښې او دَ
ميدان له ټولو ځناورو نه ملعون يې په خپله ګېډه به ځې او ټولې
١٥ ورځې دَ ژوندون خپل خاورې به خورې ۱۵ او زه به ستا او دَ ښځې په
مينځ کښې او ستا دَ اولاد او دَ هغې دَ اولاد په مينځ کښې دښمني واچوم
١٦ نو دې به ستا سر تکوي او ته به د دهٔ پونده چيچې ۱۶ او ښځې ته يې
وويل چه ستا عذاب او ستا حمل به ډېر زيات کړم په عذاب سره به
اولاد راورې او خپل سړي ته به دِ شوق وي او دې به په تا باندې
١٧ حکم کوي ۱۷ او آدم ته يې وويل چه هر کله تا دَ خپلې ښځې خبره واوريده
او له هغې وني نه چه ما حکم کړی وه چه له هغې نه ته مه خوره- وخوړله
نو زمکه ستا په سبب لعنتي شوله ټولې ورځې دَ ژوندون خپل به ته
١٨ په غم سره خورې ۱۸ او هغه به ستا دَ پارهٔ اغزي او مالکونډې وټوکوي
١٩ او ته به دَ ميدان شينکي خورې ۱۹ ته به دَ خپل مخ په خولو سره ډوډۍ
خورې تر هغه پورې چه زمکې ته ورو ګرزې چه ته تر آخستلې شوې يې
٢٠ څکه چه ته خاورې يې او خاورو ته به ورګرزې ۲۰ او آدم دَ خپلې ښځې
٢١ نوم حوّاء وباله څکه چه دا دَ ټولو ژوندو مور ده ۲۱ او خداوند الله دَ آدم او
دَ هغه دَ ښځې دَ پارهٔ له څرمنې جامې جوړې کړلې او دواړو ته يې واغوندولې
٢٢ ۲۲ او خداوند الله وويل چه اوس آدم لکه يو له مونږ دَ ښو او دَ بدو
پېژاندونکي شه هسې دِ نه وي چه خپل لاس اوږد کړي او دَ ژوندانه له
٢٣ ونې نه هم څه واخلي او وخوري او تر ابده ژوندې پاتې شي ۲۳ نو خداوند
الله دې دَ عدن له باغ نه وويست چه دَ هغې زمکې چه دې تر آخستې شوې
٢٤ وه خدمت وکړي ۲۴ پس آدم يې وشاړه او دَ عدن دَ باغ په نمرخاته
کرّوبيان او بريښيدونکې ګرزيدونکې توره دَ پارهٔ دَ ساتنې دَ لارې دَ ونې
دَ ژوندون يې ودروله ✠

PENTATEUCH IN PASHTU.
TRANSLATED BY THE REV. WORTHINGTON JUKES.
PESHÁWUR.

THE BRITISH AND FOREIGN BIBLE SOCIETY.
LONDON.

1890.